


# تاریخی ماتریالیزم

د ځوانانو لپاره

لیکوال: محمد رضا قربانی
بیاځلی چاپ: د محسن خپرندویه
بریښنا لیک:mohsinpubs@gmail.com
ویبلاګ:www.mohsinpubs.blogspot.com
د خپریدو نیټه: تله ۱۳۹۰ – اکتوبر ۲۰۱۱

# نوم لړ



# سریزه

ګرانو زلمو!  داکتاب چې اوس ستاسو په لاس کې دی، تاریخی ماتریالېزم نومیږی. دتاریخی ماتریالېزم تر لوستلو دمخه بایده ده چې دیالکتیکی ماتریالېزم مو په ښه توګه زده کړی وي.

## تاریخي ماتریالېزم څه شی دی؟

انسان چې ذاتاً په ټولنیزه توګه ژوند کوی، د مادی جهان یوه برخه ده (هرشی چې له مادې جوړشوی وي ماده بلل کیږي).



له دی امله د مادي دنیا د قوانینو تابع دی. تاریخي ماتریالېزم هغه علم دی چې ښیي انسانان څه ډول په خپلو لاسونو طبیعت ته بدلون ورکوي، او څه ډول تاریخ او ټولنه جوړوي.



یوه کیسه:

په یوه ښکلي ښارکې یوه ټولواک، چې ښکلې او ښایسته لور یې لرله، ژوند کاوه. هره ورځ به بډای ځوانان له لرې او نږدې څخه دپادشاه دربار ته په رویباري راتلل. ټولواک د

کیسو له اورېدلو سره ډېره مینه لرله. شاو خوا کسان به یې له سهاره تر ماښامه پرخوا او شا را تولېدل او پرله پسې به دکیسو په جوړولو لګیا ؤ، چې څو پادشاه خوشحاله کړي.



خو څه ګټه یې نه کوله اویوه ورځ هم د اعلیحضرت په مبارکې خولې، شاباش، نه راته، ځکه چې ټولې کیسې بې خونده او تکراري وي. هغه د یوې نوې کیسې اورېدلوته تلوسه لرله. له همدې امله یې هوډ وکړ، خپله لور به هغه چاته ورکوي چې یوه نوې او په زړه پورې کیسه ورته واوروي.

په هماغه ښارکی یوې بوډۍ ښځې، چې ځوان زوی یې درلود، ژوند کاوه. یوه ورځ ځوان هلک د شهزادګۍ انځور دیوه تغر پلورونکي حاجي په دوکان کې ولید او یونه چی سل زړونه یې پرې بایلودل.

بوډۍ له ګاونډیانو اورېدلي ؤ چې ټولواک به خپله لور هغه چاته ورکوي چې یوه نوې او په زړه پورې کیسه ورته واوروي او



دغه خبره یې خپل زوی ته وویله. ځوان ولاړ او د تاریخي ماتریالېزم کیسه یې پاچاته واوروله.

شاه او شهزادګی، د کیسې تر اوریدو وروسته، له ډېرې وېرې ناکراره شول او خپلو ماموراتو یې چیغې کړې:



«دغه هلکی غواړي مونږ بېچاره کړي. هغه غواړي د مونږ دتوکم (نسل) جرړې اوباسي. هغه غواړي ز مونږ تاج اوتخت له منځه یوسي. وای،څه کیسه ده! پوهیږی، که دغه کیسه له قصر څخه بهر ته ووځي، څه خاورې به مو په سر شي؟ که خلک په دی کیسې خبرشي،وای څومره لویه بدبختی! دا احمق بوځی او چارماري یې کړی او ماغزه یې له سره را وباسی، او بیایې ووروسپو ته واچوی څو چې د ناولو سوچونویې اثر پاتې نشي».



ماموران ځوان د چارماری لپاره بوته.

ګرانـو بچیـانو! خامخـا بـه تاسـو ټـول د تـاریخي ماتریـالېزم کیسه اورېدل غـواړئ چې شاه او شـهزادګۍ یې لـه دومـره



وېرې او ناکرارۍ سره مخ کـړل؛ دومـره چې آن د ځـوان د چارمارۍ کولو حکم یې ورکړ؟ ښه، تاسي غـوږ شـئ چې زه کیسه درته واوروم.

تاریخي ماتریالېزم

ؤ نه ؤ، ډېر څه ؤ، خو زه او ته پکښې نه ؤ.

خـوا او شـا دېـرش ملیونـه کالـه پخـوا، یعنـې د دریـم (نیوزوییک) دوران په منځنیو کې، هغه مهال چې تي لرونکو د دوهم دوران د خزندګانو ځای ونیو؛ انسان ډوله بیزو ګان پیدا شـول چې په تکـو شـنو او تـازه ځنګلـو کې لـه پـاڼو او



شاخونو ډکو ونو کې يې ژوند کاوه. په اصل کې هغوی عادت درلود په ټولیزه توګه ژوند وکړي. په ونو ورختل، کبلې، منې، کوپړه او ډول ډول مېوې يې خوړلې، له یوبل سره يې لوبې کولې، یوبل يې ځورول او لنډه داچې په خپل ډول يې خوشحاله ژوند درلود.

د دریم دوران په وروستیو کې د ځمکې پر مخ، د ځینو ځایونو هوا ورځ په ورځ وچېدله؛ کرار کرار غرونه پیدا کېدل او تک شنه ځنګلونه، له مینځه ولاړل. بنه، بنکاره ده له دغسی پیبنو سره، د بیزو ګانو ډلې هم له منځه ولاړې. خو ځینو يې چې له ژوند سره ډېره مینه لرله او نه يې غوښتل له مینځه ولاړشي، هڅه وکړه د ځمکې پر مخ خپل ژوند پر مخ بوځي. خو هېره دې نه وي چې دغو شادوګانو لکۍ نلرله.

هغوی په اول سر کې د ځمکې پر مخ په څلورو، لاس او پښو ګرځېدل او په دوو پښو ګرځېدل ورته د یو ډول په زړه پوری مشغولامانا لرله، خو کرار کرار دغه په دوو پښو ګرځیدل ورته د یـــوډول عـادت بنـه غـوره کـړه او دغـه عـادت لـــه لاســو



ثخه د لاښې ګټې اخیستنې موقع ورته برابروله؛ داسې چې د نورو حیواناتو په وړاندې، له ځان ثخه د دفاع لپاره یې له لرګو او کاڼو، ثخه کار اخیستلای شو.

## دځمکې عمر د ځمکې پېژندونکو له نظره:

ځمکه د ځمکې پیژندونکو له نظره په دوو دورو ویشل کیږي:
لومړی دوران ، او دوهم دوران

لومړی دوران چې پخپله په دوودورو ویشل کیږي:
۱-لومړی دوره: په دی دوران کی، چې **۲ ملیارده** کلونه یې دوام و موند، د ځمکې پر مخ هېڅ ژوي شتون نه درلود.
۲-دوهمه دوره: **یوملیارد** کاله یې دوام و موند. په دی دوران کی د امینو اسیدونو له یوځای کیدلو ثخه پروتینونه جوړشول. امینو اسیدونه په اوبو کی له کیمیاوی ترکیبونو ثخه رامنځ ته شوی ؤ.

د پروتینونو له تکامل ثخه البومینوییدونه پیدا شول چې ځینویې کولاې شول له خپل چاپیر یال سره راکړه ورکړه ترسره کړي،یعنې له چاپیریال ثخه یې خواړه اخیستل (خواړه په اوبوکی موجودې خټې او ذرې وې) او د خوړو له مصرف ثخه وروسته یی اضافي مواد د مدفوع په ډول بیرته چاپیریال کې خوشې کول.

دالومړنی ژوندۍ ماده وه چې کېدای شي د ژوند منشاء وبلل شی. د آلبومینوییدونو له ملیونو کاله تکامل وروسته یوژوندینکه (یو حجروي) موجودات پیدا شول چې له خپل چاپېر یال سره پر راکړې ورکړې سربیره یې زیږنده (تولید مثل) هم کولای شول. له دغه ځایه د ژوندیو موجوداتو پرتمینې بشپړتیا، دوام و موند.

دویم دوران په څلورو دورو وېشل کیږی:

۱-لومړۍ دوره : نباتات، حشرات، چینحي، ماهیان اوښکیانو (خارپوستانو) شتون درلود. دې دوران شاوخوا **۳۷۰ ملیونه** کاله دوام وموند.

۲-دویمه دوره: دغه دوران **۱۵۰ ملیونه** کاله اوږدوالی درلود. د دې دوران ژوندي موجودات نرم تنان او **ښوییدونکی (خزندګان)** ؤ. دغه دوره د ښوییدونکو (خزندګانو) په دوران مشهوره ده.

۳-دریمه دوره: دې دورې **۶۰ ملیونه** کاله اوږدوالی وموند. ددې دورې په وروستیوکی هوا ډیره یخه شوه او زیات شمیر کنګلونه مینځ ته راغلل. په کلي ډول ډیر تي لرونکی، لکه سپي، غوایي، آس، پیشو او زیات شمیر انسان ته ډیر ورته ژوي چې اوسني انسان د دغو د تکامل پایله ده پیدا شول. د بېلګې په توګه **پارا پیتکوس** هاغه موجودات ؤ چې انسان سره یی ډیر ورته والی درلود.

۴-خلورمه دوره : (لرغون ډبره، منځګوړی ډبره، نوی ډبره او فلزات)

دغه دوره **یو ملیون** کاله ده. او د **انسان د پیدایښت** په دورې شهرت لري. په دې دورې کې آب و هوا ناځاپي بدلون و موند او یخه شوه داسې چې ځینې ژوي مړه او ځینې کډوال شول.

له ټولو لرغونی انسان **استرالو پیتوکوس** نومیده چې په نیم صحرایي سیموکی یې دژویو په ښکار کولو ژوند کاوه.

څوزره کاله وروسته د **پیته کانتروپوس** او **سینانتروپوس** په نوم د انسانانو نورې ډلې پیدا شوې چې په ډله ایزه توګه یې ژوند کاوه. هغوی په خپلو لاسونو زیات کار کاوه او په پاي کې و توانېدل چې له ځان څخه د دفاع اوزار جوړ کړي. انسان د اوزار په جوړولو و کولای شول ځان له حیواناتو څخه بېل کړي.

هغه په خپلو لاسونو له لرګو څخه اوزارجوړکړل، یعنې په لاسونې کار وکړ، او د کار په واسطه یي اوزار جوړ کړل او دغو اوزارو انسان له حیواناتو بېل کړ. له دې امله ویلای شو چې په حقیقت کې کار انسان جوړ کړ. کار ددې سبب شو چې انسان، سربېره پر ګیاه او میوو، د هغوژوو (حیواناتو) غوښې هم وخوري چې د دفاع په پایلې کې وژل کېدل. البته داهم طبیعي خبره ده چې انسان په لومړي سر

کې یوائځې ګیاه او مېوې خوړلې؛ او غوښه یې د مېوو اوبوټو د لږوالي په وخت کې خوړله. حیواني پروتیین، د انسان د بدن او ماغزو په جوړښت باندې ډیره چټکه او عجیبه اغېزه واچوله. داسې چې کولاې یې شول د خپل چاپېر یال او کار په اړه، چې سرته یې رساوه، لا ښه فکر وکړي او همدغه فکر د کار د پراختیا لامل و ګرځېد. جالبه داده چې هغوی د کار پر ترخ کی په ناټاکلی توګه بی مفهومه آوازونه ایستل چې کرار کرار یې د هغوی د حنجری په جوړښت اغېز پرېښود او وروسته له ډېرو وختونو یي وکولای شول له خپلې حنجرې څخه د خپلې خوښې آواز وباسي.



شاوخوا ۲۰۰ زره کاله پخوا داسې انسان ژوند کاوه چې اوسني انسان سره یې زښت زیات ورته والی درلود. هغه ته د **نیاندرتال** انسان وایی. هغه پوره د کنګلونو په ډیرو سختو شرایطو کی استوګن ؤچې د څلورم دوران په پیل کې، یعنې یوملیون کاله پخوا، پیل شوي ؤ استوګن ؤ. په دی شرایطوکی ډېر ژوي لـه منځه ولاړل. دسرې شوې سیمی د دښتو او ځنګلونو ټول بوټي له منځه ولاړل.

لاکن انسان نورو سیمو ته پناه یووړه. د هغوی لپاره تر ټولو ښه پټون ځای غار ؤ چې کولای یې شو، له یخني یې وساتي.

کرومانیون چې د نیاندر تال انسان د تکامل پایله ده، نننـي انسان سره کټ مټ نژدې والی لري.

د انسان بشپړتیایی بهیر له څلورم دوران څخه تر نن پوری

اســترالو پیتکــوس –پیتکــانتروپوس – ســینانتروپوس – نیاندرتال – کرومانیون—ننی انسان



**استرالو پیتکوس:**

په دوو پښو ګرځېدل، لـه کـانو او لرګو څخـه یـې ددفـاع لپـاره کـار اخیسـت. پـه دریـم دوران کی یـې ژونـد کـاوه او د څلـورم دوران ؛په لومړیوکې یې هم شتون درلود چې وروسته بیایې خپل ځای پیته کانتروپوس ته ورکړ.



**پیته کانترو پوس:**

ځینې پوهـان پـه دې بـاور دي چې پیتــه کــانتروپوس د خــوړو پخولــو لپـاره لـه اور څخـه کـار اخیسـت. د انسان له لومړنیو ډلو څخه یوه ډلـه وه چې د څلورم دوران په پیل کی له کنګلونـو څخـه دمخـه یې ژوند کاوه ؛ او د انسان له ډېرو پخوانیو ببلګو څخه دی.

پيته کانترو پوس له ښکار او د ګياه او مېوو له راټولولو څخه خپل خواړه برابرول.



**سينانتروپوس:**

وروسته له پيته کانتروپوس څخه، سينانتروپوس ته وار ورسيد چې د استرالو پيتکوس په خلاف يې له اور څخه ګټه اخيستله.



**د نياندر تال انسان:**

هاغه کډوال ۀ چې د اقليم د ناڅاپی بدلون او کنګلونو له امله د اروپا غارونو ته و تښتېدل.

**کرومانيون:**

هاغه انسان ۀ چې نننۍ انسان سره ډېر نږدې ۀ. کور جوړونه او کرهڼه هم کرومانيون پيل کړه. د حيواناتو اهلي کول هم د کرومانيون کار ۀ.

**نننی انسان (انديښمن):**

دفکر کولو په وسيله يي وکولای شو چې نورځناور دخپل ځان تابع کړي. نننۍ انسان چې په هرعلم کی يې بې ساری پر مختګ کړی دی،آسمانونه يي سوري کړل او د رياضي د محاسبوی فورمولونو او دنجوم دعلم له لارې يې

سـپوږمی تـر ولکـې لانـدې راوسـتله او دادی پـر نـورو




ستورودلاس بري په لار کې پر مخ درومي.

د ځنګلونو تر له منځه تللو وروسته انسانان پـه سـمڅو کې ځای پر ځای شول. ډېره موده يې په سمڅو کې ژوند وکړ خو د غذايي توکو لږ والی ددی لامل شو چی له غذايي توکو ډکو سيمو ته د تللو هڅه وکړي. داسی ځايونو ته چې اوبه، زيات کبان او د ښکار کولو لپاره ډېر ژوي ولري.

څرنګه چې د دغې موضوع لپاره، نژدې ټول پـر يـو ځـای را غونډېدل، بـل ځـل بـه بيـا د غـذايي توکـو لـه کمـوالي سـره مخامخ شول؛ له دې امله د هغوی ځينې ډلې نـورو سـيمو

ته په کډه کولو اړی شوي. هغوی نورې تولنې جوړې کړي چې په بشپړه توګه یې د ژبې، دود، دستور او رواجونو له اړخه د یوبل سره توپیر درلود. انسان د خپلو اړتیاوو لرې کولو لپاره له طبیعت سره مبارزه پیل کړه یا په بله ژبه، په تولید یې لاس پورې کړ؛ او هر هغه څه ته یې چې په طبیعت کې موجود ؤ د خپلې پېژندګلوی او خپل توان په اندازه، د ځان په ګټه بدلون ورکاؤ. د بېلګې په ډول، ځینې وخت به چې له یخنی سره مخامخ شول دداسې څېز جوړولو په فکر کې لوېدل، چې ځان له یخنی ځینې وژغورلای شي. دداسې څیز جوړولو لپاره پخوا تر هر څه **کار** کول ضرور ؤ. لاکن کوم شی باید موجود وی چې د جامو په ډول یې جوړ کړي ؛ یعنې د **کار موضوع** ته اړتیاوه. داسې شي چې پر هغه باندی کاروکړي تر څو په جامو بدل شی ؛ لکه د ژوو څرمن. خو کېدای شي چې د ژوو له څرمن څخه په تشو لاسونو جامې جوړې کړو؟
ښکاره ده چې نه. نو ځکه د ژوو څرمن (دکار موضوع) په جامو اړول، **اوزار** ته اړتیا لري.

انسان وکولای شول د تولید د دریو لومړنیو عواملو په وسیلې په تولیدي کارونو لاس پورې کړي یعنی لومړی کار، دوهم د کار موضوع، دریم د تولید اوزار. په زرګونو کاله وروسته انسان په کور جوړولو پیل وکړ او سر بېره پر سمڅو د بل استوګنځي خاوند هم شو. انسان له کور جوړولو سره

جوخت کرهڼه هم پیل کړه (کرهڼه دکار د وېش په پایله کې، چې ورو سته به یې روښانه کړو، منځ ته راغله. ځکه د ښځو له کارو ځینې یوهم د ځمکې پر مخ د بړدنو شیندل ؤ او لومړنی ځېز هم ؤ چې انسانانو په ځمکې کې وکاره) د انسانانو په لاس جوړ شوي کورونه غټ ؤ. ځکه چې په ټولنیزه توګه یې ژوند کاوه او په کورونو کې ټول سره شریکان ؤ.

هو،انسانانو په هر حال په ګډه ژوند کاوه. په ګډه یې له ځان څخه دفاع او په ګډه یې ښکار کاوه. په ګډه یې خوراک کاوه او په ګډه بېدیدل او لنډه دا چې هېڅوک د بل چا څښتن نه ؤ. ټولو په هر ځیز کښې یوه اندازه ونډه لرله. ځمکه د ټولو وه. داسی څوک نه ؤ چې ووایی دغه ټو ټه ځمکه ځما مال دی، په هغه وخت که «ځما مال» هیڅ مانا نلرله. هر څوک په هر ځیز کې شریک ؤ او یوګډ (اشتراکی) ژوند یې درلود.

دغه ګډ ژوند **لومړنی کمون** نومېده. په دې دورې کی انسان مجبور ؤ اشتراکی ژوند وکوي. د بېلګې په توګه یو خروړی ژوی باید په ډله ایزه توګه ووژني. دمېوې ټولولو لپاره باید ځنګل ته ولاړشي چې بیاهم مجبور ؤ په ډله ایزه توګه دغه کار وکړي او هغوی ټول کارونه په ډله ایزه توګه (په اشتراکی ډول) تر سره کول؛پایله دا چې هر کار یې چې کاوه په مساوي توګه یې په خپل منځ کې سره وېشل. ځکه

نو په دې دورې کی دځبېښناک دشتون لپاره ځای نه ؤ؛ یـو دلیـل یـې ډلـه ایـز کـار او بـل هـم د تولیـد دمهمـو اوزارو نشتوالی ؤ.

توضیح: مخکې مو وویل چې انسانان د مېوې دټولولو لپاره په ډله ایزه توګه ځنګل تـه تلـل. کېدای شي ځینـې کسـان ووایي، کله چې ځنګلونـه د چاپېریـال د ناځـاپي بـدلون لـه امله له منځه تللي وه، بیاهم انسانان د مېـوې ټولـولـو لپـاره ځنګل ته تلل؟ باید ووایو چې انسانان هغه وخت ځنګل تـه تلل چې د هوا د بدلون څخه زرګونه کاله تیـر شـوي او هـوا بېرته بیا توده شوې وه. بله داچې د ځمکې د ټولو سیموهوا سړه شوي نه وه او په ټولو سیمو کې کنګلونه مـنځ تـه نـه ؤ راغلي؛ او انسانان په تدریجي کډوالې داسې سـیمو تـه تلـل چې چاپېریال ښه اود ځمکه د نوروسیمو په پرتلـه تـوده وه.



دې تدریجي کډه کولو په زرګونـو کالـه اوږد والی و مونـد او پـه دې ډول انسـانانو د سـړې هـوا پـه وړانـدې ډلـه ډلـه پـه شاتګ وکړ او وروسته له کلونو یې بلې سیمې ته خپل ځـای بدلاوه او په همدې توګه دغه بې ځایه کیـدنی دوام و مونـد تر څو چې وروسته له زرګونو کلونو د استوګنې وړ سـیمو تـه ورسیدل.

شاوخوا اوه زره کاله دمخه، د نېزې له اختراع څخه څو کاله وروسته، کارونه لږلږ د نارینه او ښځینه پر بنسټ ووېشل شول. نارینه د ژوو ښکار او خرمنو برابرولو پسې تلل او ښځې د ماشوم زېږولو، کبانو ښکار او ماشوم روزنې په چارو بوختې شولې، تردې چې ماشومانو او بوډاګانو هم خپلې اړوندې چارې سرته رسولې.

د کار دغه وېش، د کار د اوزارو د لا بشپړتیا لامل شو. د بېلګې په توګه مېخ او ستن هم پر تېرو ډبرو، چقماق (دښیښې ډبره)، نېزې او ډبرېزو تبرونو ورزیات شول. لکه څرنګه چې وویل شول، شاوخوا اته زره کاله پخوا کرهڼه (کرنه) منځ ته راغله.



دکار د اوزارو لرل د ټولو لپاره ضروري ؤ؛ ځکه چې، هرچا کار نه کاوه، د خوړلو حق یې هم نه درلود؛ او هر چا چې هر څومره کار کاوه هغومره به یې خوړل، له دې امله نو ټولو د تولید اوزار لرل؛ او د تولید د اوزارو لرل د کمزوري له امله آسانه ؤ. له دې امله ځبېښناک او د نورو له کاره ګټه اخیستنه، پخپله بې مانا کېدله.

په لـومړني کمـون کې لـه همـاغو ډلـو څخـه چې د غـذايي موادو د کمښت له امله نـورو بيلـو بيلـو ځـايونو تـه کډوال کېدل د طايفې په نوم کوچني ټولنې منځ تـه راغلې اوبيـا د څو طايفو له يوځای کېدلو څخه قبېله جوړه شوه. په قبيلې کې هم کار او توليد او ژوند اشتراکی ؤ؛ ځکه د توليد ابزار لا کمزوري او انسان هم د وحشي او داړونکـو ژوو پـه وړانـدې بې وسه او کمزوری ؤ.

د يادولو وړ ده چې په لومړني کمون کې دولت، شتون نه در لود لاکن مقررات او دود دستور واکمن ؤ چې له مخې يـې د سپين ږيرو او سپين سرو ډير درناوی کېده. پنځوس زره کاله پخوا انسان وتوانېد چې لومړنی تي لرونکی يعنې سـپی اهلي کړي او زرګونه کاله وروسته يې وکولاي شول نور ژوي هم اهلي کړي.



دا د لومړني کمون د له منځه تللو پيل ؤ؛ ځکه هغـه قبيلې چې د ژوو په اهلي کېدلو يې برياليتوب تر لاسه کاوه، پخپله برلاسي کېدلې. د ژوو له اهلي کېدلو سره مالداري هم مـنځ ته راغله.

نژدی اته زره کاله پخوا انسان د اوسپنی اود مسو په ویلی کولـو وپوهېـد. خبـره داسـې وه چـې د اور لـه کشـف کولـو وروسته ځینې وخت داسی پېښېده چی انسانانو به د خځلـو ډېری تـه اور ولګـاوه او د اور تـودوخې بـه د ځمکـې پـر مـخ ځینې ډبرې ویلې کړې. ویلې شوې ډبرې به دځمکې پر مخ خوځیدلې اوپه کندو کې بـه یـې ځـای ونیـوه. انسـان لیـدل چې له څه مودې وروسته به ویلې شوی فلز سوړ او کلک شو او د کندو په منځ کی به یـې بېـل بېـل شـکلونه ونیـول؟ پـه دی ډول بشر د فلزاتو په ویلې کولو وپوهېد.

انسان د فلزونو او لرګو په مرسته یوم، لور، چاقو او دسپاری پاله (قلبه) جوړ کړل.



د یـوم، لـور او قلبـی اختـراع د کرنـی د بشـپړتیا سـبب و ګرځیده. د کرنی او مالداری بشپړتیا چې اوه یا اته زره کالـه پخوا د غویو، پسونو، بزو او سرکوزي په اهلي کولو مـنځ تـه راغله، د کرنی څخه د مالداری د بېلېدلو لامل وګرځید.
په پیل کی د لـومړنۍ کرنـی او لـومړنۍ مالـداری د کمـزوري توب لـه املـه چې دغیشـواو (دامونـو) پـه وسـیلې یـې ژوي ښـکار ول او دښـکار شـوي ژوي غوښـي یـې څخـه د ګټـې اخیستنې لپاره ذخیره کولی، هرې قبېلې کولای شـول چې

هم د کر نی چارې تر سره کړي او هم د مالدارۍ، خو د دواړو بشپړتیا د کرنی او مالدارۍ چارې لاپسې پېچلې او له یوبل څخه بېلی کړې. د کرنی او مالداری د بېلبېدلو بل لامل داؤ چې مالدارانو ډېر و شنو دښتو او څړځایونو ته اړتیا لرله.

په ټولنه کې د کار **لومړني وېش** بېلی بېلی قبېلې منځ ته راوړې. په دغه ټولنیز ویش کار کی مالدارې یا شپنې قبېلې له کرنیزو (کروندګرو) قبایلو څخه بېلې شوې. کرنیزو (کروندګرو) قبایلو. د کرنې د ودې په لارکې اوهم مالدارو قبېلو د مالداری د پراختیا په لارکې هڅه او هاندکاوه.

کله چې کرنیزې او مالداره قبېلې سره بېلې شولې یوبل ته د اړتیا له امله یې نه یواځې چې یوبل سره یې اړیکې ونه شلېدلی ګواکی تجربی او اختراع ګانې یې هم یوله بل سره بدلولې یعنې راکړه ورکړه او بدلول یې کول. وروسته بیا چې د تولید اوزار بشپړ او دغه شان مبادلې تر سره شوې، د انسان ژوند چې د کورنیو په بڼه ؤ، لا سوکاله او د تولید ي اوزارو د بشپړتیاسبب شو. انسان وکولای شول له خپلې اړتیا څخه زیات تولیدوکړي. دغه اضافي محصول پاتې کېده او له دې امله چې وګړو، ځانګړی یعنې د کورنیو بڼه نیولې وه هاغه اضافی محصول بل چا ترلاسه کاوه. دا، له یوی خوا، او له بل پلوه د کار له ټولنیز وېش څخه وروسته

قبایلو په بېلو بېلو ځمکو کې په کرنې او مالداری باندی پیل کړی ؤ. د کالونو له تېرېدلو وروسته یې خپل ځان په ځمکې پوری وتاړه، یعنی بیا د ځمکې پر ښندودلو تـه تیـار نشـول. هرڅوک په هغې ځمکې ونښـتل چې کـار یـې پرې کـاوه او ویې ویل: «داځماده».  په ځمکې پوری تړلتوب او د تولید د اوزارو بشپړتیا او د حیواناتو اهلی کولو اشـتراکي ژونـد تـه اوضـاع خرابـه کـړه او حتـی د خصوصـی مالکیـت بنسـټ کېښودل شو. سربېره پر دې داقدم په تاریخ کی لـوي قـدم ؤ؛ ددې لپـاره چـې د تولیـد اوزار د خپلـې بشـپړتیا هغـی مرحلې ته رسېدلي ؤ چې وکولای شي اشتراکي نظام پـه بـل نظام واړوي. د فلزاتو د ویلې کولـو یـا د خیش چـوبین پـه خیـر، خیزونـو جوړولـو تـه چـې کرنـې کـې کـار ول کېـږي متخصص ته اړتیا وه ؛متخصص هم داسی یوه ځای ته اړتیا لرله چی هلته له خپل تخصص څخه د ګټې اخیستلو لپـاره کار او هڅه وکـړي.  لـه دې املـه دغـه فلـز کـار مجبـور وه د خپل ځان لپاره د فلزاتود ویلې کولو کوره جوړه کړي چې په دې ډول کسب ګري منځ ته راغله. په پیل کی بزګـر کـولای شول دخپل ځان لپاره د کرنې سـاده اوزار جـوړاو کـار پـرې وکړي، خو د تولید د اوزارو د بشپړتیا له امله متخصـص تـه اړتیا پیدا شوه داسې چې یوه بزګر نشوای کولای هم د خپلو کرنیزو وسـایلو متخصـص یـا کسـبي واوسـي او هـم بزګـري وکړي. په پایله کې د ټولنیز کـار **دویـم ویـش** مـنځ تـه راغـی چې دکارپه دغه ویش کی کسب ګري له بزګـري څخـه بېلـه

شـوه. دې کـار، تولیـدات او همـدا ډول مبادلـه زیاتـه کـړه، ځیېښناک، خصوصي شتمني او زور زیـاتی یـې هـم لـه ځـان سره راوړ. نور نـو دلتـه یعنـې داچـې د لـومړنی کمـون اوګـډ ژوند پای.

شاوخوا پنځوس زره کاله پخـوا، هاغـه مهـال چـې انسـان د



کورنۍ په بنه ژوند کاوه، ځینې وخت داسې هم پیښېده چې یوه قبیله د بنې ځمکې او اوبو لاس ته راوړلـو لپـاره پـه بلـې قبیلـــې بریـــد وکړي. له همدې املـــه د ژونـــدیو بنـدیانو ســاتل د بریـــالۍ قبیلـــې



لپاره یو سر خـوږی ؤ ځکـه خـو بریـالۍ قبیلی ټول بنـدیان وژل. هغه وخت د تولید وسایل کمزوري ؤ او هر چاپـه دې وسایلو یواځې دومره کولای شول چې خپل نس موړکړي.



وروسته له دې چې کرنې او مالداری بشپړتیا وموندله، او انسان د اور د کشفولو له امله د فلزاتو په ویلې کولو وپوهېد، او په کلي ډول د تولید د اوزارو دتکامل سبب شو چې هر څوک له خپلې اړتیا څخه زیات تولید وکړي،نور نو هغه قبیلې چې په جګړه کې بریالۍ کېدلې، خپل بندیان یې نه وژل په هغو یې کار کاوه او په دې ډول یې د **مریي توب نظام**، منځ ته راوړ.

په پیل کی سپین ږیري،چی دقبیلې وګړو یې ډېر درناوی کاوه، په مریي والو بدل شول او بندیانو به د هغوی تر څارنې لاندې کار کاوه. البته په دې دورې کې کسب ګر هم ؤ چې له مریي والو څخه به یې پیسې په پور اخیستلې، ځینې وخت به پوروړو کسب ګرو، د پور خلاصولو توان نه درلود، ځکه به اړ کېدل چې خپل اولاد یا ځان وپلوري او په مریي بدل شي.

مریي والو له مریانو سره وحشیانه چلند در لود هغوی په بې رحمي سره مریان ځببښل او حتی یوه شببه یې هم ددمې کولو اجازه نه ورکوله. مریي لکه دځمکې،



کور، سپي، وزی، پسه، خره او نـورو په خبـر د مریـي وال د شتمنۍ برخه او حتی له هغوځخه هم کم ارزښته ؤ.

تر هغه وخته به ژوندي پاتې کېده چې له خپل خوراک ځخه



زیات تولید وکـړای شي،لـه ناروغتیـا، کمـزور تیـا یـا ناتوانـه




کیدلو سره سم وژل کېده.
مریانو تر کوم وخته پورې دغه ستونزمن کار زغمـلای شـو؟
بې له شکه چې هغوی د پاځون او ځان ژغورنې پـه فکـر کې لویــــدل. ځکـــه





خوددغو بلواګانو د ځپلـو لپـاره **دولـت** منځ ته راغی.

لومړني مریي وال نظامونه په مصر او ورپسې، پنځه زره کاله پخوا، چین او هندوستان کې منځ ته راغلل. هو، مریي والـو ددولت په پلوي او ملاتړ دشلاخې (قمچینی) په زور پـه ډېـر سپک پاسک وضعیت یی دمریانو څخه ګټه اخیسـتله او لـه فرمان څخه سرغړوونکی کسان یې وژل.



دا اوضاع د مریانو د بلوا لامل شوه.

په مصرکی د «وسطی» د پاچاهی پـر مهـال، مریـانو پـاڅون وکړ چې د ماتی سره مخ شوه. ۳۸۰۰کاله پخوا دچین هبواد کی مریانو، کسب ګرانو او بزګرانو د مریـي والـو ضـد پـاڅون وکړ. بلوا ګرو یوبل سره د پېژند ګلـوي لپـاره د خپلـو سـترګو وریځې یي سری کړی وی. پر پلازمېنې یې برید وکړ او هغه یې ونیو. خو سربېره پر دې ټولواک په ډېر کړاود بلواګرو پـه ځپلو بریالی شو. او پـه پـاي کې، د مریـانو تـر ټولـو مشـهور پاڅون، د اسپارتاکوس پاڅون دی، چې ۲۰۵۲کالـه پخـوا د مریـي والـو پرضـد پـېښ شـو. دې پـاڅون دوه کالـه دوام وموندـاو پـه پـاي کې یـې ماتـه وخـوړه. پـه دې مـاتې کـی ۶۰۰۰مریان پر صلیب وځړول شول.



پوښتنه داده چې مریانوولې ماته وخوړه، سر ښېره پر دې چې شمېر یې له مریي والو څخه زیات هم ؤ؟ دهغوی د ماتې دلیل داؤ چې نه پوهېدل له بریالېتوب وروسته څه ډول نظام پلی کړي. مریانو داسې انګېرله چې له مریي والي پرته هېڅ ډول نظام نشته، آن تر دې چې ځینې مریان، تر بریالیتوب وروسته پخپله مریي وال کېدل او د مریانو په ځېښناک به بوخت شول. یعنې بیایې هم نشوای کولای د مریي او مریي وال مسله له منځه یوسي دلته ؤ چې مریان له خپلو پاخونونو څخه ناهیلې شول او دځان د خلاصون لپاره یې مذهب جوړ کړ. البته لومړنیو انسانانو هم له یوې خوا دخپل چاپېر څخه د پېژندګلوي نه لرلو او له بل لوري له طبیعت څخه د وېرې او ډار له امله، د طوفان، باران، تالندې او برېښنا په لمانځلو لاس پورې کړ. اما وروسته له دې چې دغه شیان یې ښه وپېژندل په کرار کرار یې دغه خدایان ښېرته له یاده وابستل. په پای کې یې له ځانه پوښتنه کوله: «کیدای شي چې خدای شتون ولري؟ خامخا داسې خدای شته چې د بې وزلو پر حال ځان خبر کړي او له ظالمانو څخه د مظلومانوحق واخلي» هغوی حق درلود دځان لپاره داسې شي جوړ کړي چې د مریي

والو له منګلوېي وژغوري؛ ځکه دومره ځـواک یـې پـه خپـل ځان کې نه درلود. همداسې ۀ چې د نمـرود پـه زمـانې کـې ابـراهیم او د فرعـون پـه مهـال کـې موسـی د ولسـي پرګنـو ژغورلو ته پاڅېږي. یعنې پروګـړو بانـدې زور زیـاتی داسـې ۀ چې دوی یوژغورونکي ته سترګې په لاره ۀ.

مریـانو داسـې انګېرلـه چـې هېڅـوک او هـېڅ ځـواک نشـې کولای فرعون په ګونډو کړي،پرته له هغه چـا چـې د خـدای



له لوري او د هغه په ځواک د مریانو ژغورلو ته ورشـي. داده چې موسی د ولس له منځه را پـاڅېږي او نـارې وهـي: «زه هماغه ژغـورونکی یـم چـې تاسـي ورتـه سـترګې پـه لاريـي.» دلته وګړي هیله من کېږي او هیله، هغـوی د ظلـم او سـتم ضد مبارزې ته هڅوی. دټولنې تاریخ داسې کسـانو تـه اړتیـا لرله. عیسی باید خامخا راغلای وای او ټول خدایان یې لرې کړي وای او یو خدای یـې پرېښـودلای وای. مریـانو دارنګـه مذهبونو ته اړتیالرله خو مریـي وال یـواځې هاغـه وخـت لـه مذهبونو سره موافق ۀ چې د هغوی ګټې یې خوندي ساتلې وای. او که کله وخت، دبیلګې په توګه یوڅـوک راغلـی وی او د اسلام په خبر دین یې راوړی وی، چې د سود خـورو ضـد او د ستمکارانو ضد وی بیـا هـم مریـي والـو دومـره صـبر او



زغم کاوه چې ماهیت ته یې بـدلون ورکـړي اوبیـا لـه هماغه دیـن څخـه په ګټې اخېســتلو ســره پـر ګنــې وځبېښي.

بنـه، لـه دې بـه تېـر شـو، ومووېل چې مریـان د خپـل نـاوړه وضعیت تـر اغیـز لانـدې راغلل او پرلـه پسې یـې پـر بلـوا او کـار نـه کولـو لاس پـورې کاوه. په کرار کرار،دې مسلو په اربابانوکی وېره پیدا کـړه، لـه دې امله یې هوډ وکړ چې هغوی تـه هـم دکـار پـه بـدل کـی یوڅه ورکړي.



اوبیا راغلل، خپلې ځمکې یې په زرګونو کوچنیو ټوټو ووېشـلې او هـره ټوټـه یـې یـوه مریـي تـه د کرلـو لپـاره پـه اجـاره ورکړه.

دزمانې په تېریدلو،دغه مریان پـه داسې بزګرانـو بـدل شـول چې څښتنانو یې له ځمکې سره یوځای رانیولای یا پلورلای شول. خو بیاهم هغوی خوښ ؤ، ځکه چې له خپل کار څخه یې ګټه هم اخیستلای شوه.

په دی ډول **جاګير داري** (فيودالي) نظام چې دمريـي والـي په خبټې کې يې وده کړې وه منځ ته راغی. نـور نـو هغـوی



مريیان نه ؤپه نـوی نظـام کـې فيـودال ځبښـونکي او بزګـر ځبښل کېدونکي ؤ. بزګر بايد يوځل دخپل ځان لپاره کار کړی وی چې خپـل او دخپلې کـورنی ژونـد تـامين کـړي او يوځـل هـم د فيـودال لپـاره. يعنـې د ځمکـې د اجـارې لـه ورکولو سربېره، مجبور ؤ چې د ارباب پرځمکې هـم پـه وړيـا توګـه کـار وکـړي. پـه دې ډول زيـات وخـت يـې دارببـاب پـر ځمکې کارکولو باندې تېرېده. دوخت له تېرېدلو سره بزګران د فيودالانـو لـه زور زيـاتي څخـه پـه تنـګ او د هغـوی ضـد پاڅونونه يې پيل کړ.

خو، دافيودالان څوک ؤ؟ ټولواک په ښه توګه د خپل ځواک خوندي ساتلو لپاره د هبواد ځمکې، چې خپلـه شـتمني يـې بلله، د درباريانو تر منځ ووېشلې. دا درباريـان چې فيـودال نومېدل، ځمکې يي پر نورو کسانو ووېشلې.

په پيل کی دفيودال له مړينې وروسـته د هغـه ځمکـې بېرتـه اخيسـتل کېـدلای شـوې؛ خـو وروسـته بيـا ځمکـې ميراثـي

شوې. يعنې د فيودال له مړينې وروسته، دهغه نژدې کسانو ته ور رسېدلې. لکه څرنګه چې پوهيږو،د توليداوزار تـل د



بشپړتيا په حال کې دي او د توليد د وسايلو بشپړتيا تر هغه ځايه ورسېده چې سربېره پر بادي او آبي ژرندو، قطب نما او د چاپ صنعت يې هم ترلاسه کړ.

کسب ګرانو د جولا څرخ اختراع کړ؛ دارو (باروت) او د توپ ګولۍهم جوړ شول.

په اصل کې فيـودالېزم د پـورتنۍ بشـپړتيا پـه وړانـدې خنـډ، اولـه ټولـو پورتنيـو پرمختګونـو سـره مخـالف ؤ. پـه عمـومی ډول، فيـوډالی نظـام کې بزګـر لـومړی د **جنسـي بهـرې** او وروسته د **نقدي بهرې** په بڼې ځبېښل کېده.

جنسي بهره څه ډول ده؟

بزګر ځمکه له فيودال څخه اخيستله او کار يې پرې کـاوه او بيـايې دحاصـل يـوه انـدازه څښـتن تـه ورکولـه.

نقدي بهره څه ډول ده؟

دلته بزګر، د حاصل پر ځای، پیسې څښتن ته ورکوي.







د وخت له تېرېدلو او د فیودالانو د بې رحمانه زیاتی، د علم او صنعت پرمختګ سره بزګرانو څوځله د فیودالانو ضد پاڅون وکړ. په دې پاڅونونوکې پانګوالو، سوداګرو او کسب ګرو هم ګډون درلود.

ډېره زمانه وروسته ځینې بزګران د خپلو مالکانو له لاسه ښارونو ته و تښتېدل او په کارځایونو (کارګاه) کې په کار بوخت شول. په لومړی سر کې چې کار ځایونه کوچني ؤ د کسب ګراو کارګر اړیکې د استاد او شاګرد او کله د پلار او زوی په بڼه وې. خو وروسته چې صنعت پرمختګ وکړ،ځینې لویو ځمکوالو چې ټول بزګران یې له لاسه ورکړي

ۀ،د کارګاه ګانو جوړولو لپاره پانګه اچونه غوره وګڼله. په پای کې د بخار ماشين له اختراع وروسته کارخانې منځ ته راغلې.

کسب ګرود کار خاوند بڼه ونيوله او تښتېدلي بزګران د پرولتاريا په بڼه (پرولتاريا يا کارګر هغه څوک دی چې د خپلې خښتې مړولو لپاره د خپلو متو توان پلوري) کارخانو کې په کار بوخت شول. په دې ډول د **پانګوالی نظام** ته، چې د بزګرانو، پانګوالو او کسب ګرو د سترو مبارزو پايله



وه،وار ورسيد.

پانګوالي له راتللو سره سم خپل قبر وکېنده؛ ځکه دانظام هم د زيار کښې طبقې په ځبېښلو بوخت شو. پانګوال نظام، دډېره کي کسب ګرو دماتې لامل شواو يوائې ځينې کسب ګر د خپلو کارګرانو د زيار له برکته په کار فرمايانو بدل شول.

پانګوال په داسې توکو (کالا) پسې ګرځيدل چې ډېره ګټه پرې ترلاسه کړي؛ او داګټه يوائې د کارګر د کار له لارې ورته راتلای شوه. له دې امله پانګوال راځي او د پرولتاريا

کار په ډېرو لږو پیسو رانیسي. هاغه کارګران چې د خپلو متې ځواک پلوري، ټول په یوه کار کې پوهه نلري؛بلکه هریو په یوې څانګې کې پوهه لري. د پانګوالۍ په لومړي پړاو کې، یوشمیر کار ګرانو چې ټولوېي په یوې څانګې کې مهارت درلود



(دبېلګې په ډول غالۍاوبدنه) دتولیدي اوزارو د سپما لپاره د خپل کار ځواک پریو ځای خرڅاوه او په ډله ایزه توګه یې غالۍ اوبدله ؛ چې د غالۍ ګټه د کارځای د څښتن په جب کې لوېدله.

کله چې لاسي صنایعو لا ډېر پرمختګ وکړ، پانګوالو په بېلو بېلو څانګو کې متخصصان په کار و ګمارل.
دلته هم کارګرانو پر یوځای کارکاوه خو د پخواني پړاو په شان یې یو کار نه ترسره کاوه؛ ځکه هریوه په یوې څانګې



کې پوهه او تخصص درلود. خو بیا هم ټولـو پـه خپلـو بېلـو بېلو مهارتونو، یوډول کـالي جـوړول. یعنـې جـولا چـې ټـوکر اوبـدونکی او درزي (خیـاط) چـې ګنـډونکی دی پـه پـانګوال پورې اړو تولیدي وسایلو څخه پـه ګټـې اخېسـتنې، د جـامو په نوم کالي رااېستل. جولا او درزی هریو ځـان تـه یوکسـب لري خو دواړه په پانګوال باندې د خپل کار په پلورلو یوډول توکي (کالی) جوړوي.

هاغه څه چې مونږ له پیل څخه تـر اوسـه ټینګـار پـرې کـوو دادی چې د تولید اوزار تل د بشپړ تیا په حـال کـې دي. لـه دې امله دبخار ماشـین لـه اختـراع سـره لاسـي صـنایع هـم دوام نه مومي او خپـل ځـای لویـو کارخـانو تـه پرېـږدي. پـه پانګوالي نظام کې ټول تولیدی وسایل د پانګوال په لاس کې دي او کارګر یـواځې پـه ظـاهر کې آزاد او پـه پـانګوال پـوری تړلي ندي. لاکن که لږ فکر وکړو ګورو چې کـارګـر د خپلـې خبټې مړولو لپـاره او د تولیـدی وسـایلو د نـه لرلـو لـه املـه پانګوال ته اړتیامومي.

دامانا چې په واقعیت کې کارګر د خپل کار ځواک په پلورلو کې، چې په کوم پانګوال یې وپلوري، آزاد دی کـارګر، دژونـد ي پاتې کیدلو لپاره پرته له دې چې خپـل کـار پـه کـار فرمـا وپلوري، بله لار نلري، ځکه له اقتصادي پلوه پـه هغـه پـورې تړلی دی.

پانګوال حتی د کار اصلی بيه کارګر ته نه ورکوي او په ډېر بد چلندېي ځبېښي. له دې امله د پانګوال او کارګر تر منځ يوه دښمني او هڅ (ضديت ياهوډه) يعنې تضاد پيدا کيږي.
پانګوال، يواځې او يواځې د ډېرې ګټې لپاره توليد کوي.



هغه دتوکو (کالو) دتوليد په لړکې، حتی د ټولنې اړتيا هم په پام کې نه نيسي او د ډېرې ګټې ترلاسه کولو لپاره په انسان وژنــې هـــم لاس پورې کوي.



پـانګوال لـه يوبـل سره سيالي کـوي او دخپل برياليتوب لپاره، د تکنيـک اوصـنعت پـه پرمختـګ کې زيـار باسي. داسـيالۍ هـم پـه صـنايعو کـی د نـه منلـو پرمختګ سبب ګرځي. په دې ډول توليـد کې کـار ګـر اړتيـا نلـري چې لـه جسـمي پلـوه ځـواکمن واوسي، ټـول کارونـه پخپله ماشين سرته رسوي او کار ګـر يـواځې يـو مکـانيکی او تکراري عمل تر سره کوي. دموضوع د روښـانولو لپـاره يـو دوتينار (صحافی) په پام کی نيسو: يـو کـار ګـر د کاغذ ګډه

(فرم ها) له ماشین څخه تېروي. بل کارګر کاغذونه، چې ماشین په منظم ډول ټول کړي اخلي. دسته کوی یې او په یوځای کې یې کښېږدي. ترتیبوونکی (تابین) کارګر یې دمخ د شمېر په ترتیب برابروي. او بل کارګر برابر شوي کاغذونه د پوښ په منځ کی سره نښلوي. پانګوال چې ټول فکر یې د ګټې ترلاسه کول دي په کارخانو کې د کار له آسانه کېدلو سره سم،، ماشومان او ښځې،چې لږ مزدوري یې اخیستله، هم کارخانې ته بیول.



دپانګوال په لاس کې دماشین د پرېوتلو له امله، چې تولید یې آسانه کړ، ځبېښناک بې اندازې زیات او وحشیانه شوی ؤ؛ په عام ډول هرڅومره چې د پانګوال شتمني ډېرېدله، کارګر بې وزله





کېده او دهغوی تر منځ ټکر (تضاد) او اختلاف له پخوا څخه لازیاتېده.

دغه ځای دی چې پانګوالي په خپل وروستني پړاو، **امپریالیزم**، باندې پښنه کېښودله اود سقوط اوغوزارېدلو درشل ته رسېږي.



دغه دوره د پانګوالو د سیالۍ «نیستی کندی» د صنایعو او تولیدی وسایلو د پرمختګ له امله منځ ته راغله. څرنګه چې پانګوالو له یوبل سره سیالي کوله، مجبورۇ د ټولنې له اړتیا څخه زیات توکي (کالی) تولید کړي. هغوی د ډېری ګټې لپاره، یوبل سره سیالی کوله او ددغې سیالي له کبله یې دومره تولید کاوه چې رانیونکی ونلري ځکه مجبورېدل چې د کالو بیه ببخي ډېره را ټیټه کړي. په دغه ډول، تولید شوي توکي په دوی باندې اناوټ پاتې کیدل. لویو پانګوالو ولیدل چې آزاده سیالي، ددې لپاره چې د خلکواړتیاپه پام کې نه نیسي، دوی د ماتې او بدمرغۍ سره مخامخ کوي،نوځکه راغلل د کوچنیو پانګوالو له لاسو څخه یې د هغوی لږلږپانګی راوابستلې او ډېرې لویې کارخانې یې

جوړې کړې. ددې لپاره چې دشيانو بيې ثابتې وساتي،توليدېې په خپل لاس کې ونيو او په دې ډول لويوپانګوالووپټيله چې هرپانګوال يوائې ټاکلي توکي (کالي) توليدکړي. له دې امله،توليدانحصاري شو. په لاندې ببلګې کې انحصارباندې رڼااچوو:

دسګرتو توليد يوائې فلانۍ کارخانې پورې منحصردی. او بله کارخانه دسګرتو د توليد حق نلري. په امپرياليزم کې انحصار د آزادې سيالۍ ځای نيسي. سربېره پردې، پانګوال د نړۍ په نورو هېوادوکې پانګه اچوي. يعنې ددې پرځای



چې په خپلې پانګې، خپل هېواد کې په توليد لاس پورې کړي او توليد شوي کالي نورو هېوادو ته صادر کړي، نبغ په نبغه خپلې پيسې بهر ته صادروي او هلته پانګه اچوي. ياپه

بلـه ژبـه، پـه امپریـالیزم کـې د پـانګې صـادرول، د کـالو د صادرولو ځای نیسي.

ددې لپاره چې لـوي پانګوال وکـولای شي پـه آسانی خپـل اضافه تولید په بهرکی اوبه کړي، د نوروهېوادونو بازارونه په خپل انحصارکې راولي او دغه بازارونه په خپل منځ کې سـره وېشي، ترڅوچې اضافي تولیدېې په دغـو هېـوادوکې وپلـورل شي.

په دی نظام کی مهمه مسله دبانک نقش دی. په امپریالیزم کـې کـوچني بانکونــه د کوچنیــو پــانګوالو د پــانګې پــه راټولولوسره، چې د کارولو توان یې نه درلـو، د لویـو بـانکونو په بنې واوښـتل او لویـو بـانکونو هـم لـه یوبـل سـره لاس یـوکړچې پـه پایلـه کې یـې ټولې لـویې او کـوچنۍ پانګې پـر یوځای ټولې شوې. اوس لـوي پـانګوال، د کوچنیـو پـانګوالو پانګه، چې په بانک کې راټوله شوی ده، په کار اچوي. یعنې لوي پانګوال چې د صـنعتي او انحصـاري کارخـانو خاونـدان دي، دتولیــــــد او تولیــدي وســایلو د پراختیـا لپـاره دغـو پانګوتــه چــې پــه بــانکونوکې راټولــه شوې ده اړتیامومي. ځکـه نـو ددغـو دوو



پانګو یوځای کېدل، یعنې کارخانې او صنعتي انحصارونه او په بانکونوکی راټولې شوې پانګې، **مالي پانګه** جوړوي. دادی ومولیدل چې بانکونه له امپریالیزم سره څومره ډېره مرسته کوي.

کله کله داسې هم پېښېږي، ځینې تولید کوونکي یوبل سره ژمنه کوي چې تولید شوي کالي په یوې ټاکلې او ثابتې بیې وپلوري. په حقیقت کې داسې تړون کوي چې تولید شوي کالي به له یوبل څخه په ارزانه بیې نه پلوري. دې تړون ته کارتل وایي.

له **کارتل** څخه وروسته **سندیکا** منځ ته راغله. په سندیکا کې دتوکو تولید او پلورنی ته له یوه مرکز څخه لارښوونه کیږی. سندیکا هرې کارخانې ته امر کوي چې، دبېلګې په ډول:



«ستا کارخانه یوازې حق لري چې دومره اندازه کالي تولید کړي او کولای شي خپل

تولیدات د سندیکا د پلورنځي ادارې ته ورکړي چې ویې پلوري».

ومو ویل چې امپریالېزم د پانګوالۍ وروستی پړاو دی. هو، ځکه داپړاو دځبېښل شوو شمیر د نړۍ په کچه زیاتوي. لوي پانګوال د ځان د نسکورېدلو له وېرې د مجهزو پولیسو، اردو او پایګاه په جوړولو لاس پورې کوي، او هر ډول حق غوښتونکی آواز د پولیسو په زور غلی کوي.
دتبلیغاتو او پروپاګندله لارې د کارګرانو د پوهې زیاتېدلو د مخنیوي هڅه کوي. خو په دې نه پوهیږي چې ټولنه به خپل بشپړتیایي لاره ووهي.

دهغوي هڅې یواځې ددوی له منځه تلل ځنډوي. له تاسونه پوښتنه کوم چې،آیا مریي وال نظام وکولای شو خپل عمر اوږد کړي؟ او یا فیوډالېزم چې هر څومره زورونه ووهل بریالی شو؟ ښکاره ده چې نه. پانګوال نظام هم، همدا ډول دی. تاریخ او د ټولنې بشپړتیابه اجازه ورنکړي چې د تل لپاره ځان وساتي. پانګوالي، چې وروستی پړاو یې،



امپریالېزم دی د جګړې، وژنې، نیستی، بدمرغی او د بې عدالتی منځ ته راوړونکی دی. په پای کې به پرولتاریا و پوهیږي، او په دغو تضادونو یا توپیرونو به یې سر خلاص شي او د حل کولو لپاره به یې دخپل ستر او پرتمین انقلاب په وسېلې د پانګوالی ورستی پښې را و پرځوي ؛او پر ځای به یې **سوسیالېزم** کښېنوي.

پرولتاریا به په دې بنې خپله نیستی او بدمرغی او ځبېښناک پای ته ورسوي. د **کمونېزم په لومړي پړاو یعنې سوسیالېزم** کې به د ځبېښناک ګرو ټغر و نغښتل شي او



ټول باید کار وکړي؛ځکه هر څوک چې کار نه کوې باید خوراک هم ونه کړي. لاکن یوه خبره شته او هغه هم داچې باید داسې ونه انګېرل شي چې سوسیالېزم کې ټول اختلافونه له منځه ځي. په دې دورې کې د تولید وسایل په بشپړه توګه د خلکو لاس ته نه ورځي او خصوصي شتمني له منځه نه ځي. هر چاته د هغه د کار په اندازې ورکول کیږي. اوس که د چا اړتیا زیاته وي باید کار هم زیات وکړي. په دې نظام کې ډېر پخواني دودونه او عقېدې لا پاتي دي. د هغو، د له منځه وړلو او د دودونو او عقېدو د نوي کولو لپاره وخت ته اړتیاده.

په کلي ډول، سوسیالېزم کې ټولنېز مالکیت په دوه ډوله وېشلې شو. یو، **دولتي مالکیت** او بل **ډله اېز مالکیت**. په دولتي مالکیت کې ټول کولای شي له تولیدي وسایلو څخه ګټه واخلي چې هغه ته **ټول وګړیز مالکیت** وایي. په ډله اېز مالکیت کې هم ښکاره ده چې یوه ټاکلې ډله په ګډه سره تولیدي وسایل تر لاسه او کار پرې کوي.

لکه څرنګه چې مو وویل په سوسیالېزم کې شخصي مالکیت په بشپړه توګه له منځه نه ځي او حتی کېدای شي یوڅوک دتولید کوچنی وسیله هم ولري.

خو په دې شرط چې بل څوک پرې ونه ځبېښي. دپاملرنې خبره داده چې هرڅوک د خپل کار په اندازې ترلاسه کوي او ټول پوهېږي چې د خپل ځان لپاره کار کوي، نه د یوموټي پانګوالو لپاره،ځکه نو د ټولنی د پرمختګ لپاره د زړه له کومې زیار باسي. له همدې امله د تولید اوزار په ډېرې چټکۍ وده کوي او سوسیالېزم، **کمونېزم** ته درسېدلو تر وخته پورې سوکه سوکه پرمختګ کوي.



په عام ډول ددې نړۍطبقاتي تضادونه يا طبقاتي توپيرونه له منځه ځي او جرړې يې راوځي. پانګوال هغه قبر ته



سپارل کيږي چې په خپلو لاسونو يې کېندلی دی.

دتوليد وسايل په هېڅ ډول د چا په انحصار کې نه دي. خصوصي شتمني مفهوم نه لري. يعنې څوک ددې حق نه لري چې ووايي «هغه شی ځما مال دی» ځما مال هېڅ معنی نلري. دټولنې غړي، ټول په يوې اندازې د توليد د وسايلو څښتن دي. **له هرچا څخه د هغه د توان او استعداد په اندازې کار غواړي او هرچاته يې دهغه د اړتيا په اندازی ورکوي. په داسې حال کې چې سوسياليزم کې هرچاته د هغه د کار په اندازې ورکول کېدل، نه داړتيا په اندازې.**



کمونيزم يوه بی طبقې ټولنه ده، چې

ټول له ملي سرچينو او د توليد له وسايلوڅخه په يوشان ګټه اخلي.

هېڅوک د هېڅا ښښتن نه دی. ټول بايد کاروکړي او ټول بايد ښه او سوکاله ژوند ولري؛ نه لکه دپانګوالي نظام په ډول چې يوکس پرته له دې چې کار وکړي ښه ژوند لري او هاغه چې له سهاره تر ماښامه زيار باسي ايله خپل نس مړوي. په کمونيستي نظام کې له رهبر څخه راواخله بيا د ټولنې تر يوه يوه غړي پورې بايد لستونې راونغاړي او کار وکړي او خپل هېواد د علم او صنعت د پر مختګ په بنسټ جوړ کړي. دانظام يواشتراکي نظام دی.

ټول د هېواد په رغوني کې ونډه لري او هرڅه چه جوړوي د خپل ځان لپاره يې دي. البته داسې فکر مه کوئ چې دااشتراکي او بې طبقې نظام هم د لومړني کمون په شان دی. سمه ده چې لومړنی کمون هم يوټولنېز ژوندؤ؛خوکه ښه ځير شوي يي ليدلي به مووای چې په هغه نظام کې د توليدې وسايلو د کمزوريتوب له امله هرچاپه سختۍ سره کولای شو خپل نس موړکړي لاکن په دې نظام کې دتوليد وسايل دخپلې ودې ډېری لوړې کچې ته رسيدلي دی، لکه چې ومولیدل په پانګوال نظام کې يوه کارګر د هغو توليدې وسايلو په مرسته چې د پانګوال په لاس کې ؤ دخپلې مزدوري دېرش خلوېښت برابره توليد کاوه او کله لا تردې هم زيات. له دې امله په کمونيستي نظام کې خلک په

تولیدي وسایلوکې شریک دي، چې کولای شي د خپلې اړتیا څو برابره زیات تولید وکړي. دلته ده چې په یوې اونۍ کې ۴۰ساعته اویا تردې هم ډېرکم کار باندې د ډېر ډېر سوکاله ژوند خاوند کېدلای شي. په داسې حال کې چې په لومړني کمون کې دتولیدی اوزارو د کمزوري توب له امله، انسان په ورځ کې ۱۳ نه تر۱۴ ساعته پر له پسې زیار ایسته او بیا یې هم خپل نس نشو موړولای. له دې امله هاغه مشهوره خبره ده چې: توپیر له ځمکی تر آسمان پورې دی.



پوښتنې او ځوابونه

په لومړي سرکې هڅه وکړی چې تاسي پخپله پوښتنو ته ځواب ورکړی، وروسته یې بیا له ورکړ شوی ځواب سره پرتله کړی.

**لومړۍ پوښتنه** ـ ټولنه څه شی دی؟

ځواب: هاغه کور چې ژوند پکښې کوی،ټولګی چې درس پکښې لولی، ښار چې ژوند پکښې کوی، او هېواد چې ژوند پکښې کوی هریو،یوه ټولنه ده. ټولنه دانسانانو راټولېدلو او یوه اقتصادي نظام (لکه مریي واله یا فیودالیزم یا نور) کې

ژوند کولوته وايي چې ټاکلی بشپړتیايي پړاو لري. مانا داچې دبېلګې په توګه هاغه ټولنه چې د فیوډالېزم نظام کې استوګنه لري، ښکاره ده چې د تاریخ راتلونکي پړاو کې، په پانګوالي بدلیږي.

**دوهمه پوښتنه** ـ طبیعت څه شی دی؟

ځواب: هاغه څه طبیعت نومیږی چې په منځ ته راتللو کې یې انسان ونډه نلري؛ لکه لمر،ځمکی، اوبو او هوا پورې اړونده پدېدې. ځمکنیو پدېدو د انسان له منځ ته راتللو دمخه شتون درلود، له دې امله انسان نشي کولای په منځ ته راوړلو کې یی ونډه ولري. په هغه وخت کی چې ځمکه نه وه، ملیاردونه ستوري او سیارې (لکه ځمکه) په بې سر او پایه او نا محدودې فضاکې موجود ؤ،چې د منځ ته راتللو دپیل په اړه یې هېڅ هم نشي ویل کېدلای.

**دریمه پوښتنه** – انسان څه شی دی؟

ځواب: انسان چې دطبیعت یوه برخه ده له نورو ژوو سره په دې کې توپیر لري چې په ځانخبري ډول (آګاهانه) او په یوې ټاکلې موخې طبیعت ته بدلون ورکوي؛ په داسې حال کې چې نور ژوي که طبیعت ته بدلون هم ورکړي،دکومې موخې له امله نه وي. په کلي ډول انسان هاغه موجود دی چې ذاتاً ټولنېز ژوند کوي یعنې ټولنېزدی اوپه خپلو لاسونو دکار اوزار جوړولای شي.

**ځلورمه پوښتنه** – آیا انسان کولای شي دطبیعت د قوانینو له پام کې نیولو پرته، هغه ته بدلون ورکړي؟
ځواب: یه، انسان یواځې دطبیعت له قوانینو څخه په ګټې اخیستلو هغه ته بدلون ورکولای شي.

**پنځمه پوښتنه** – دټولنې او طبیعت توپیر څه شی دی؟
ځواب: دټولنې او طبیعت توپیر دادی چې ټولنېزي پدیدی دهغو انسانانو دفعالیت او هڅې په پایله کې منځ ته راځي چې دیوې موخې لپاره اود ارادې اوشعور له مخه کار تر سره کوي؛ په داسې حال کې چې د طبیعت پدېدې همداسې پخپل سر منځ ته راغلې او د چاشعور او اراده پکښې ونډه نلري. پایله داچې د ټولنې تاریخ دهغو انسانانو په لاس جوړیږي چې شعور او اراده لري او د طبیعت تاریخ په خپل سر منځ ته راځي.

**شپږمه پوښتنه** – تولیدي مناسبات څه دي؟
ځواب: انسان په ټولنېز ډول کار کوي، تولیدات یې هم په ټولنېزه توګه ترسره کیږي. کله چې انسانان کارکوي او دکار په وسیلې په تولید لاس پورې کوي، دهغوي ترمنځ اړیکې ټینګیږي او دا اړیکې بدلیږ (راکړه ورکړه) نومیږي یعنې دهغه څه بدلول چې دکار په وسیلې یې تولید کړي دی. دې اړیکو ته تولیدې مناسبات وایي چې دکار او تولید او مبادلې په پایله کې د انسانانو ترمنځ رامنځ ته کیږي. په کلي ډول

له تولیدې مناسباتو څخه مطلب دادی چې دتولید وسایل د کومې طبقې په لاس کې دي.

**اوومه پوښتنه** - تولیدي اړیکې په څو ډوله دي؟
ځواب: په دوه ډوله.
۱- دهمکاري اړیکی ۲- دتابع والې اړیکې
۱- دهمکاري اړیکې: له دې امله چې ټولنیز نظام کې ټول د تولید په وسایلوکې ونډه لري کار او تولید په ټولنېزه بڼه دی او ټول له یوبل سره مرسته او همکاري کوي؛نوځکه یې تولیدې اړیکې د مرستې او همچاري (همکاري) په بڼه دی.
۲- دتابع والې اړیکې: په دې نظام کې دتولید وسایل دیولږ شمېر کسانو په لاس کې وي،او پاتې کسان دهېڅ ډول تولیدي وسایلو څښتنان نه دي. له دې سببه مجبور دي هغو یوشمېر کسانو ته کار وکړي، یعنې دتولید وسایلو دڅښتنانو تابع شي، چې دڅښتنانو له خوا ځبېښل کیږي.

**اتمه پوښتنه** – کار څه شی دی؟
ځواب: ددې لپاره چې انسان نشي کولای په هغه څه باندې بسنه اوژوند وکړي چې طبیعت کې موجوددي، دکار په وسیلې، چې دشعور او ارادې له مخې هڅه ده، دطبیعت شیان په خپلې ګټې بدلوي او دمصرف وړ په بڼې یې اړوي؛

سربېره پر دې، کار، انسان له طبیعت سره نښلوي او دژوند اړتیاوې یې لرې کوي. کار د ټولنیز ژوند اساس او بنسټ او له حیوان څخه دانسان بېلونکی دی.

**نهمه پوښتنه**- مولده ځواک څه شی دي؟
ځواب: هاغه اوزار دی چې انسان دهغو په مرسته دکار موضوع ته بدلون ورکوي؛یعنې له یوه بې مصرفه څیز څخه یې دمصرف وړ په بڼې را اړوي.

**لسمه پوښتنه**-مولده ځواک څه شی دی؟
ځواب: مولده ځواک دټولو هغو وسایلو مجموعه ده چې په تولید کی برخه اخلی.
دکار اوتولید اوزار+دکار موضوع+دانسان دکار ځواک، پوهه او تجربه.

**یوولسمه پوښتنه** – بیخبنا (زیر بنا) تعریف کړی؟
ځواب:هره ټولنه دیوه ساختمان په څېر بنسټ یا بېخبنا (پرته له ساختمان څخه) اومخبنا لری. بنسټ یا بېخبناتولیدي اړیکې دي او ټولنیز ژوند کې ډېر اهمیت لري. بېخبنا د مولده ځواکونو په وضعیت پورې تړلې ده. دتولیدي اړیکو له جوړولو پرته په تولید لاس پورې کول ناشونی دی. دبېلګې په ډول ترڅو چې یودرزي رانیونکي ونه لري،نشي کولای یوه جوړه کالي وګنډي. درزي (خیاط)

هغه وخت کولای شي کالي وګنډي چې رانیونکي سپاربښتنه ورته کړې وي.

**دولسمه پوښتنه** ـ مخبنا څه شی دی؟
ځواب: مخبنا د افکارو،عقایدو، سیاسي نظریاتو، مذهبونو، فلسفي افکارو او په هغو پورې اړونده بنیادونو ټولګه (مجموعه) ده ؛دبېلګې په توګه مذهبي عقاید له جوماتونو، کلیساګانو او یا سیاسي عقاید له ګوندونو او اړونده سازمانونو او نورو سره یوځای مخبنا جوړوي.

**دیارلسمه پوښتنه** ـ فرماسیون یا اجتماعي ـ اقتصادي صورتبندی څه ته وايي؟
ځواب: فرماسیون د تاریخ د تکامل یو پړاو دی چې د ټولنې بشپړتیا، پړاو په پړاو بیانوي.

**څوارلسمه پوښتنه** – د پنځو ټولنیزو – اقتصادي فرماسیونونو نوم واخلئ؟
ځواب: ۱- لومړنی کمون ۲- مریي والي ۳- جاګیر داري (فیودالېزم ) ۴- پانګوالي ۵- سوسیالېزم.

**پنځلسمه پوښتنه**- سوسیالېزم له تاریخي- اقتصادي لیدلوري،څه ته وايي؟

<u>ځواب</u>: سوسیالیزم د کمونیزم لومړی پړاو دی او کولای شو هغه له یوه پول ( پل) سره پر تله کړو چې کمونېزم ته درسېدلو لپاره باید پر هغه پورې وځو.

**<u>شپاړلسمه پوښتنه</u>** – کمون څه ته وایي؟
<u>ځواب</u>: کمون د ګډ «ټولیز» په مانادی.

**<u>اوولسمه پوښتنه</u>** ـ لومړنی ټولنیز- اقتصادي فرماسیون څه شی دی؟
<u>ځواب</u>: لومړني کمون.

**<u>اتلسمه پوښتنه</u>-** مالکیت په لومړني کمون کې څه ډول ؤ؟
<u>ځواب</u>: ځمکه، دکار وسایل، سمڅې، کورونه او نور د ټولو انسانې ډلو او افرادو د ګډې شتمنۍ برخه وه.

**<u>نولسمه پوښتنه</u>** ـ دپانګوالي لومړنی پړاو څه شی دی؟
<u>ځواب</u>: پانګوالي ساده همکاري ده. دلته پا نګوال یوشمیر <u>مزدور کارګران</u> په کارګوماري چې دیوبل سره ورته او ټاکلی کار تر سره کړي. لکه غالۍاوبدنه. ټول کارګران په ګډه سره کارکوي چې غالۍ واوبدل شي.

**<u>شلمه پوښتنه</u>** ـ دپانګوالي دوهم پړاو څه شی دی؟
<u>ځواب</u>: مانو فاکتور دلاسي کارګاه په مانا، دپانګوالي دویم پړاودی. دلته پانګوال دبېلو ببلو کسب ګرو او <u>صنعتګرانو</u> د کار ځواک را نیسي؛ د پانګوالي د بشپړتیا په دې مرحلې

کې، کارګران یوبل ته ورته کار سرته نه رسوي؛ ځکه چې هریو ځانته کسب او تخصص لري. دبېلګې په ډول یوترکاڼ دی؛ یوخیاط. له دې امله ترکاڼ او خیاط نشي کولای یوبل ته ورته کار په ګډه سرته ورسوي؛ لاکن دیوبل په مرسته یوډول توکي (کالي) تولیدوي؛ دبېلګې په ډول: ترکاڼ دلرګي، ارې، رندې،مېخ او سوټک په مرسته صندوق جوړوي؛ او ترکاڼ یې پر مخ ټوکر غوړوي او په تار او ستنې یې ګنډي.

**یوویشتمه پوښتنه** – له مانو فاکتور څخه وروسته تولید په کومې بڼې دی؟
ځواب: کله چې صنعتي کارخانو د مانوفاکتورونو او کسب ګرو د کارګاهو ځای ونیو، دماشین تولید را مخ ته شو.

**دوه ویشتمه پوښتنه** – آیا بورژوازي په ناځاپي توګه وده وکړه؟
ځواب: یه، پانګوالي د فیوډالېزم په دننه کی خپله وده پیل کړه او دفیوډالیزم ضد مبارزو کې یې مهم رول ولوباوه.

**درویشتمه پوښتنه** – کمپرادوره بورژوازي یعنې څه؟
ځواب: یعنې تړلې (وابسته) بورژوازي.

**ځلور ویشتمه پوښتنه** – ترلې بورژوازي، دځه شی لامل ګرځي؟

ځواب: په امپریالیستي هېوادونو پورې د ودې په حال کې هېوادونو د اقتصادي، سیاسي او فرهنګي ترلتوب سبب ګرځي. په دې خبرې د رڼا اچولو لپاره یوه بېلګه راوړو: دشاه په زمانی کې د ایران هېواد په پام کې ونیسې. له اقتصادي پلوه، وروسته د ځمکې له اصلاحاتو څخه د ډوډۍ، وریجو او پتاټو او لنډه داچې دټولو خوراکي موادو له پلوه امریکا ته محتاج ؤ په همدې ډول د جامو او ټولو صنعتي لوازموله اړخه. له بل پلوه ددې شیانو په بدل کې د ایران نفت د هغوي په حلق کې تویېدل. له سیاسي پلوه هم امریکا له کمونېزم سره د مبارزې په وړاندې له شاه سره ډېرې مالي او نظامي مرستې کولې. سربېره پردې ایران یې دځان لپاره دخپلې ډېرې سترې پایګاه په بڼه اړولی ؤ. له فرهنګي پلوه یې هم دخپلو تلوېزیوني مبتذلو فلمونو او تبلیغاتو په مرستې، ایران تر خپلې اغېزې لاندې راوستلی ؤ.

**پنځه ویشتمه پوښتنه** – ټولنیزه طبقه یعنې څه؟

ځواب: طبقه یعنې دانسانانو لویه ډله چې ټولنیز خصوصیات او ځانګړتیاوې یې سره شریکې وي او وکولای شو ددی ځانګړتیاوو له مخه هغوي له نورو ډلو څخه چې ځانګړتیاوي یې توپیر لري، وپېژنو.

**شپږوشتمه پوښتنه** – طبقاتي مبارزه څه شی ده؟

ځواب: ځبېښناک ګرې طبقې چې تولیدې وسایل د هغوي په ولکې کې دي، تل دځبېښناک کېدونکو طبقو دلاس خواري او حق خوري او دطبقاتي اختلافونو د منځ ته راتګ لامل ګرځي. همدغه طبقاتي تضادونه، طبقاتي مبارزه منځ ته راوړي. یعنې مریيان د مریي والو پر ضد؛او بزګران او رعیت د ځښتنانو او فیودالانو پر ضد او کارګران (پرولتاریا) د پانګوالو پر ضد مبارزې ته پاڅېږي. طبقاتي مبارزه یوه عیني مسله ده په دې مانا چې نه دچا په ارادې منځ ته راځي او نه دچاپه ارادې له منځه ځي.

**اوه ویشتمه پوښتنه** – طبقاتي مبارزه په څو بڼو ترسره کیږي؟
ځواب: په درې ډوله. ۱-اقتصادي مبارزه ۲-سیاسي مبارزه ۳- ایدیولوژیکه یا عقیده ای مبارزه.

**اته ویشتمه پوښتنه** – اقتصادي مبارزه په څه ډول ده؟
ځواب: دا مبارزه تر ډېرې کچې د مزدوري د اندازې زیاتولو، دکار ساعتونو کمښت دمادي وضعیت ښه کېدلو د کار چاپېر یال روغتیایي کېدل او لنډه داچې بیمه، له مزدوري سره، رخصتي، تقاعد او د وزګارتیا صندوق او نوردي.

**نه ویشتمه پوښتنه** – سیاسي مبارزه په څه ډول ده؟

ځواب: دطبقاتي مبارزې ترټولو مهم شکل، سیاسي مبارزه ده؛ ځکه چې د خواري کښو او ځبېښل کېدونکو طبقو د مبارزې موخه، دپانګوالي نظام لـه منځـه وړل او جـرړې ایستل، سیاسي ځواک تر لاسه کول، دپرولتاریا دیکتاتوري جوړول، ظلم او ځبېښاک له منځه وړل دي.

**دیرشمه پوښتنه** – داقتصادي او سیاسي مبارزې توپیر څه شی دی؟
ځواب: اقتصادي مبارزه یواځې دکارګرانو وضعیت ښه کوي لاکن په عام ډول پانګوال لاځبېښاک کوونکي او کارګران لاځبېښاک کېدونکي دي؛ خو سیاسي مبارزه پانګوال له منځه وړي او طبقاتي توپیر او استثمار له منځه وړي او بې طبقې نظام جوړوي.

**یو دېرشمه پوښتنه** – ایدیولوژیکه مبارزه څه شی ده؟
ځواب: په دې مبارزې کې به کارګران د خپلو ټولو بدمرغیو لامل وپېژني یعنې طبقاتي پوهه به ومومي. هغوي به خپل ستر ځواک او تاریخي رسالت وپېژني؛ اوله هرهغې عقیدې سره به مبارزه وکړي چې دهغوي دمبارزې خنډګرځي. ددې مبارزې موخه، دپانګوالي واکمني له منځه وړل اودکارګرې طبقې واک ټینګول دي.

**دوه دېرشمه پوښتنه** – انقلاب څه شی دی؟

ځواب:دټولنیزو تضادونو حل کول چې په پایله کې یې بېخبنا او مخبنا له بېخ او ریښي بدلون مومي، په دې مانا چې د بیخبنا او مخبنا بدلون نه له کمي پلوه نه بلکه له کیفي پلوه دی. او دغه کیفي بدلون، ټولنه لوړ او بشپړتیایي پړاو ته بیایي.

**دری دیرشمه پوښتنه** - دانقلاب پېښېدلو لپاره کوم شرایط اړین دي؟
ځواب: مادی شرایط + عینی شرایط + ذهنی شرایط = انقلاب.

**څلور دیرشمه پوښتنه** – مادي شرایط څه شی دي؟
ځواب: طبقاتي تضادونه ددې سبب ګرځي چې دکارګرانو وضعیت له مادي پلوه ډېر خراب او بې وزلي ورځ په ورځ زیاته شي.

**پنځه دیرشمه پوښتنه**- عیني شرایط څه شی دي؟
ځواب: واکمنې طبقې نشي کولای خپله واکمني وساتي؛ اوزیار اېستونکی نه غواړي د پخوا په شان ژوند وکړي، سربېره پر دې ځبېښاک ګر هم نشي کولای په پخواني چلند خپلې واکمني ته دوام ورکړي. له دې امله د خلکو غوښتنې او اړتیاوې زیاتیږي، واکمنې طبقې یې د پوره کولو توان نلري او د ولسي پرګنو او واکمنې طبقې تر منځ تضاد

زور اخلـي؛ داسـې چـې مبـارزې تـه لېوالتيـا پيـداکوي او د انقلاب لپاره چمتوکېږي.

**شپږ دیرشمه پوښتنه** – ذهني شرايط څه شی دي؟
ځواب: دخلکو دسياسي پوهې زياتېدل؛ د داسې سـازمان او حزب شتون چې د ولسي پرګنو مبارزه په ښـه توګـه وړانـدی بوځي.

**اوه دېرشمه پوښتنه** ـ سوسياليستي انقلاب تعريف کړی؟
ځـواب: سوسياليسـتی انقـلاب خـواري کښ د ځبېښـاک، نيستی، بی وزلی او بيکـاری لـه ځنځيـر ونـو څخـه ژغـوري. پانګوالي لـه منځـه وړی او پـه ټولنـه کـی آزادي او برابـري را منځ ته کوي.

**اته دېرشمه پوښتنه** – دسوسياليستي انقلاب توپير له نـورو انقلابونو سره څه شی دی؟
ځـواب: نـورو انقلابونـو يـواځې د ځبېښـاک بڼـې تـه بـدلون ورکاوه،دبېلګې په توګـه دفرانسـې سـتر انقـلاب د فيـوداليزم ځبېښاک له منځه يووړ او پر ځای يې د پانګوالي ځبېښـاک کښيناوه. لاکن دسوسياليستي انقـلاب موخـه داده چـې پـه کلـي ډول دځبېښـاک جـرړې وباسـې او طبقـات لـه منځـه يوسي.

**<u>نه دیرشمه پوښتنه</u>** – کارګری (پرولتری) انترناسیونالېزم څه شی دی؟

<u>ځواب</u>: پرولتري انتر ناسیونالېزم یعنې د پانګوالۍ د ظلم او ستم پرضد او د کمونېزم د ټینګښت لپاره د ټولې نړۍ د کار ګرانو او خواري کښانو پیوستون.

# بری دخلکو دی

